# دعوت إلى الله

دعوت او تبليغ ته په قرآن کې دعوت الى الله ویل شوي دي يعنې الله طرفته رابلل، انسان د خپل خالق او مالک سره تړل. د خدای(ج) په لور د رابللو مطلب دا دی چی د خدای بندګانو ته دا وویل شي چی د خدای په ځمکه ستاسو لپاره د ژوند صحیح طریقه يوازې دا ده چې تاسو د خدای بندګان جوړ شئ.

انسان لپاره د دنيا په ژوند کې يوازې دوه چلنده شوني دي يو د ځان پلوۍ او بل د خدای پلوۍ. د ځان پلوۍ چلند معنی دا ده چې سړی خپل ذات د خپلو کړووړو مرکز وګرځوي، او د خپل فکر سره سم ولاړشي. هغه د خپلو خواهشاتو پیروي وکړي. د خپلو شخصي اړتياوو پوره والی د ژوند برى وګرځوي.



د دې په مقابله کې د خدای پلوۍ طریقه دا ده چې سړی خپل ځان لره د خدای تابع او پيرو وګرځوي هغه خپل احساسات د خدای(ج) تابع وګرځوي. د هغه په وړاندې د ژوند برى دا وي چی د خدای د خوښې سره سم ژوند وکړي او د خدای په خوښه باندې د هغه پایله وشي.

ځان پلوي ژوند کې د کبر، کينې او انانيت غوندې جذبات را بيداريږي. داسی انسان دا ګڼي چې حق هغه دی کوم چې هغه يې حق و ګڼي او باطل هغه دی کوم چې هغه يې باطل ګڼي.

د خدای پلوي ژوند معامله د دې بيخې برعکس ده. خدای پلوي د سړي په ژوند کې بندګي، تواضع، اعتراف او د خپل حسابي غوندې جذبات را پورته کوي. په لومړي صورت کې که چېرې انسان خود

پرسته کیږي نو په دوهم صورت کې خدای پرسته.

دعوت الی الله دا دی چې سړی د ځان پلوه ژوند د بدې پایلې څخه خبر کړل شي او ورته د خدای پلوه ژوند خپلولو دعوت ورکړل شي. د دغو دواړو ډوله ژوندونو معلومولو د باور وړ سرچینه الهي تعلیمات دي. چې د قرآن په صورت کې په خوندي توګه مونږ سره موجود دي. دعوت الی الله یو ځانګړی اخروي ډول کار دی چې له ټولنیز یا اقتصادي یا سیاسي معاملاتو سره یې نېغ په نېغه څه اړه نشته. دا یوه لړۍ ده چې انسان د خدای او اخرت په لور رابلي. په همدې دیني او روحاني اسلوب کې هغه پیل کیږي او په همدی اسلوب کې ترپای پورې دوام مومي.

د دعوت الی الله کار د خپل حقیقت په اعتبار سره



یو خدائي کار دی چی د بندګانو په ذریعه سر ته رسول کېږی. اړینه ده چی له همدې روحیې سره پای ته ورسول شي. د دې روحیې نه پرته چې کوم کار وکړای شي هغه به د دعوت الی الله کار نه وي اګر که هغه د دعوت الی الله په نوم باندې جاري کړای شوی وي.

دعوت الی الله نه د سیاست په لور د رابللو کار دی، او نه یې د قومی ستونزو په لور رابلل هدف دی. دا په بشپړه توګه د خدای(ج) په لور د رابللو یو کار دی او په همدې خاص صورت کې یې تر سره کول پکار دي.

د خدای(ج) په لور د رابللو څخه هدف څه دی د دې ابتدایي هدف دا دی چې انسان د خدای د تخلیق د پلان (Creation Plan) څخه خبر کړل

شي، هغه ته وښودل شي چې د خدای سره يي څه اړيکه ده، او خدای(ج) ورسره په راتلونکې کې څه معامله کونکی دی. دا لکه چې انسان له خدای سره د تعارف کولو يو کار دی. د دې هدف دا دی چې د خدای په هکله د انسان غفلت مات شي او هغه د خپلې بندګۍ د درک کولو سره خدای ته ښه متوجه شي.

د دې دعوتي عمل هدف دا دی چې انسان د خدای ذات وپيژني. هغه د خدای (ج) د قدرت په مقابله کی خپل ځان عاجز ومومي. د عيب پرده څيرې کېدو نه وړاندې هغه د خدای ننداره وکړي. خدای(ج) سره مخامخ کېدو نه وړاندې هغه په غيرمستقيمه توګه د خدای معرفت تر لاسه کړي.

د دعوت مقصد په انسان کې دننه ويده شوی روح



بيداروول دي. بې لارې شوي انسان لره د خدای(ج) په لور تلونکي نېغه لاره باندې ودرول دي. د دې هدف دا دی چې په انسان کی دننه هغه بصيرت ويښ کړل شي کوم چې د نړۍ په ننښو کې د خدای جلوي کتل پيل کړي. کوم چې د مخلوقاتو په هينداره کې د هغوی خالق پرته له حجابه ومومي.

دعوت يو انسان د دې وړ ګرځولو نوم دی، چې په مستقيمه توګه خپل رب سره وتړل شي. هغه ته په روحاني کچه باندې د خدای فيض رسيدل پيل شي. د هغه زړه او دماغ د خدای په نور منور شي. د هغه ټول بدن د خدای د رحمت په باران ولمبيږي.

د دعوت **هدف** دا دی چې سړی په دنيا کې په اوسېدو سره د اخرت مخلوق وګرځي. هغه د دنيا په عظمتونو کې د خدای عظمت ومومي. هغه د دنيا په

نعمتونو کی د جنت د نعمتونو تجربه کول پیل کړي. د دنیا تکلیفونه هغه ته د جهنم تکلیفونه ور یاد کړي، د دنیا منظرونو کې هغه د اخرت حقایق لیدل پیل کړي. همدا د دعوت **هدف** ده او دغه ډول انسانان منځ ته راوستل د دعوت او د داعي برى دى.

په قرآن کې ښودل شوي دي چې الله تعالی انسان د ً احسن تقویم ً په صورت کې پیدا کړ، بیا یې هغه را وغورځاوه ′اسفل سافلین′ کې یې واچوه (التین ۴-۵ ) د دعوتي عمل مقصد انسان یوځل بیا د هغه اصل ابتدايي حالت په لور ګرځول دي. له جنت څخه له را ويستلو نه وروسته بیا هغه د جنت په لاره راوستل دي. د خدای د رحمت نه لرې شوي یو ځل بیا د خدای د رحمت تر سیوري لاندې راوستل دي.



د انسان مثال داسې دی لکه د اوبو يو ماهي چې د اوبو نه را وويستل شي او په صحرا کې وغورځول شي. داسې ماهي په صحرا کې پر له پسی سلګۍ وهي. او د هغه سره غوره همدردي به دا وي چې هغه یوځل بیا د اوبو په لور وګرځول شي.

انسان هم دغه ډول د جنت يو مخلوق دی په هغه کې دننه د يو ناپېژندل شوی آیډیال(معیار) موندلو جذبه ډېره زیاته موندل کیږي. هر سړی خپل دغه نا معلوم آیډیال پسې منډې وهي. هغه بیا بیا د دنیوي ښایست لرونکي کوم شي پسی نښلي پدې امید کې چې هغه چې د کوم آیډیال په لټه کې دی هغه کیدای شی همدغه وي، خو هر ځلې ناکامیږي تر دې چې مړشي بې له دې چې خپل آیډیال یې ترلاسه کړي.

همدغه هغه ځای دی چېرته چې داعي ته خپل

دعوتي عمل سرته رسول دي. د داعي كار دا دی چې هغه انسان ته وښايي چې هغه چې د كوم آيډيال (معيار) په لټه كې دی هغه يوازې خدای او د هغه جنت دی. دا يوازې خدای دی چې موندلو سره يي سړی خپل ايډيال مومي دا يوازی جنت دی چې په رسېدو سره يې سړي ته اطمينان رسيږي. هغه چې د كومې دنيا په لټه كې و هغه دنيا يې ترلاسه كړه. په دې اعتبار سره هر انسان د داعي هدف دی. داعي لره هر وګړي ته رسيدل دي او هغه ته په هره ستركه باندې غوړيدلې پردې لرې كول دي، كه په ټوله نړۍ كې شپږ مليارده انسانان دي نو داعي ته شپږ مليارده كارونه كول دي، هغه ته شپږ مليارده روحونه د خپل رب سره تړل دي، هغه ته شپږ مليارده انسانان د هغوی خپل جنتي تم ځای پورې



رسولو ته هڅه كول دي.

د انسانيت د دې معلم نوم داعي دی. داعي هغه دی چې د ژوند په لارو باندې د رڼا مينار په حيث ودريږي. كوم چې د انسانيت بې لارې شويو قافلو لپاره خدايي لارښود وګرځي. د قرآن په ٥١ نمبر سورت كی د پيغمبر(ص) په ژبه سره ويل شوي دي چې: ففرّوا الى الله انى لكم منه نذير مبين (الزاريات:٥٠) يعنې ای خلكو! د الله په لور منډه وكړئ، بېشكه زه د هغه له لوري ستاسو لپاره ښكاره ويرونكی يم. همدغه خبره په قرآن كې په يو بل ځای كې دغو الفاظو كې بيان شوې ده: اعبدوا الله واجتنبوا الطاغوت (النحل:٣٦) يعنې ای خلكو! د الله عبادت وكړئ او له طاغوت څخه ځان وژغورئ.

په دې دنيا كې انسان د دوو بلنو پرمنځ كی دی، يو د خدای بلنه او بل د شيطان (طاغوت) بلنه. خدای

پاک د خیر سرچینه ده هغه خلک د خیر په لور رابلي د دې برعکس شیطان د شر سرچینه ده، هغه خلک د شر لارو په لور رابلي. د انسان آزموینه دا ده چې هغه د شیطان په فریب کې راګیر نه شي، شیطان پرېږدي او د خدای په لور منډه کړي.

خدای د ټولو کاملو صفتونو جامع دی. هغه عدل، رحمت، رښتینولي، ایمانداري او اخلاص خوښوي. خدای(ج) غواړي چې انسان همدغه اوچت صفتونه خپل کړي هغه خپل ځان د خدايي اخلاقیاتو په قالب کې واچوي.

د دې برعکس شیطان د بدیو مجموعه ده او هغه انسان هم بدیو په لور بېول غواړي. شیطان په انسان کې پټ شوي د بدۍ احساسات راپاروي، هغه په انسان کې حسد، انانیت، قهر، غچ اخیستنه، تکبر،



خپل موخي (خود غرضي) او بې اعترافۍ غوندې جذبات راویښوي، او د انسان انسانیت ځپي او د هغه حیوانیت راویښوي او د خپل ځان غوندې یې جوړول غواړي.

دې دنیا کې هر سړی د همدغو دوه اړخیزه غوښتنو په منځ کې دی. هر سړی د یوه داخلي جنګ په مورچل ولاړ دی. یو اړخ ته ضمیر دی چې د خدای په لور یې راکاږي او بل لور ته یې انانیت دی چې هغه تیله کوي او د شیطان په لور یې بېول غواړي. ضمیر د خدای نماینده دی، او انانیت د شیطان نماینده.

د داعي کار دا دی چې هغه انسان د دې حقیقت څخه خبر کړي. هغه په انسان کې روحي بیداري راوستلو سره یې د دې جوګه کړي چې هغه دغه دوه اړخیزه غوښتنې وپېژني. هغه خپل انانیت وځپي او د

ضمیر غږ ته ځواک ورکړي. هغه د شیطان د لمسوني څخه ځان وژغوري او د خدای د هغې لارې مسافر وګرځي چې د جنت په لورې یې بیونکی دی دغه دعوتي کار په مخ د ځمکه ترټولو کارونو ډېر غوره دی. دا د پیغمبرانو کار دی. کوم خلک چې دې کار لپاره راپورته شي. هغوی به په پای کې په ځانګړو ډالیو سره ونازول شي.

د قرآن په ۷ سورت کې د اعراف خلکو (اصحاب اعراف) یادونه ده یعنې د لوړو ځایونو خلک. دا هغه خلک دي چې په قیامت کې به په لوړو منبرونو باندې ودرول شي او د جنتیانو او دوزخیانو دواړو په هکله به د خدای د پریکړې اعلان کوي. د دغو آیتونو ترجمه دا ده:



**"او پر اعراف باندې به خلک وي چې پېژني به دوی هر یو په علامو د دوی سره. او غږ به وکړي جنتیانو ته چې سلامتي دې وي پر تاسې باندې، حال دا چې داخل شوي به نه وي دوی جنت ته او دوی به طمع لري او کله چې وګرځول شي سترګې د دوی په لور د خاوندانو د اور نو وبه وایي دوی، ای ربه مونږ مه شاملوه مونږ له دغه ظالمانو خلکو سره. او غږ به وکړي صاحبان د اعراف هغو سړیو ته چې پېژني به دوی هغوی په علامو د هغوی سره وبه وایي دا چې هیڅ ژغورنه ونه کړه له تاسې ډېروالي ستاسې او نه هغه چې وئ تاسې چې به مو کولو. آیا دا هغه کسان دي چې قسمونه به یې خوړل تاسې ته چې وبه نه رسوي دوی ته الله رحمت خپل. ننوځئ جنت ته اوس به نه وي هیڅ**

**ویره پرتاسې باندې او نه به تاسې غمجن کېږئ.“**
(الا عراف:۴۹-۴۶)

په دې آیت کې د اعراف خلکو څخه مراد شاهدان دي. یعنې د خدای هغه خاص بنده ګان چا چې په دنیا کې قومونو ته د خدای دین ورساوه او شاهدي یي پرې ورکړه بیا چا ومنله او چا انکار وکړ (تفسیرقرطبی، جلد۷، صفحه۲۱۱) دغو شهداوو (دُعاتو) لپاره په قرآن کی مختلف الفاظ راغلي دي مثال په توګه مُنذِر، مبشر، داعي او داسې نور. په دې ډله کې اولاً انبیاء شامل دي او له هغوی نه وروسته هغه خاص بنده ګان چا چې د انبیاءوو په څېر د خپلې زمانې په خلکو د دعوت او شهادت کار ترسره کړی وي.

خو په قیامت کې چې د خلکو د تل پاتې انجام کومه



پرېکړه کیدونکې ده هغه به د همدغه شهادت (دعوت) پر بنسټ کیږي کوم چې په دنیا کې په هغوی باندی تر سره شوي وو. د شهادت کار (دعوت) هم په دنیا کې انسانان په دوه ډلو کې ویشي; قبلوونکي او انکار کوونکي. قیامت کې به دغه خلک د یو بل نه جدا کړل شي او بیا به دواړو لپاره د هغوی د عمل مطابق د دوو مختلفو پایلو پریکړه وکړل شي. دغه پریکړه به که څه هم تول ټال خدایي وي خو د دې پریکړې اعلان به د دغو خاصو بنده ګانو په ذریعه و کړل شي چا چې په دنیا کي د دعوت کار ترسره کړی وي.

د هغوی به ډېر درناوی وشي. د دې اعلان لپاره به د حشر په میدان کې یو لوی تخت جوړ کړل شي چې د اعراف خلک به پرې ولاړ وي. له هغه ځای به

هغوی هر چاته ګوري او هر یوه ته به د الله پرېکړه اعلانوي.

داعیانو په دې دنیا کې د خدای کار خپل کار ګڼلی او د دې کار لپاره یې خواري کړې وه. د دې عمل په وجه به هغوی ته دا امتیازي انعام ورکړل شي چې هغوی به په قیامت کې په اوچتو ځایونو ولاړ وي او د دې حق دعوت د آخري پایلې څخه به خلک خبر کړي. څرنګه چې په دنیا کې هغوی د خپل مقصد په اعتبار سره اوچت وو قیامت کې به هغوی د دې عمل پایلې په اعتبار سره اوچت وګرځول شي.

په خدای باندې ایمان راوړلو نه وروسته د یوه بنده څخه چې په عملي توګه څه هدف دی هغه په قران کې په دوه ډوله الفاظو کې بیان کړل شوی دی: د خدای اطاعت، او د خدای نصرت. د خدای د



اطاعت څخه مراد دا دی چې بنده پر هغو ټولو اوامرو او نواهیو باندې عمل وکړي کوم چې د خدای له لوري د رسول په ذریعه ښودل شوي دي. دی هغه ټول حکمونه په خپل ژوند کې عملي کړي د کومو په عملي کولو چې خدای پاک ټینګار کړی دی. او دهغو ټولو شیانو څخه ځان وژغوري د کومو څخه چې خدای پاک د ژغورنې حکم په خپل کتاب کې ورکړی دی یا د خپل رسول په ذریعه یې اعلان کړي دي.

د خدایي نصرت مطلب د خدای سره مرسته کول دي. او دا یو نا اشنا شرف دی چې یو مومن سړي ته ترلاسه کېږي. د دې نه مراد هماغه شی دی چې په قران کې ورته دعوت الی الله ویل شوی دی څرنګه چې دغه پخپله د خدای یو مطلوب عمل دی چې د

انسان په ذريعه تر سره کيږي، نو ځکه دا د خدای نصرت سره تعبير کړی دی.

په عبادت، اخلاق او معاملاتو کې د خدای د احکامو پر ځای کول د انسان خپله اړتيا ده. د دې په ذريعه بنده خپله بندګي ثابتوي او د خدای د ډالۍ مستحق ګرځي. خو د دعوت الی الله معامله د دې نه مختلفه ده د قرآن له وينا سره سم، دا د الله څخه حجت لرې کول دي (النساء :۱۶۵) د آزموينې د مصلحت په سبب دا کار د انسانانو په ذريعه تر سره کيږي. دا يو خدايي عمل دی چې ځينې انسانان يې د خدای له لورې ترسره کوي او د خدای له لوري ورته انعام ورکول کيږي. په دې معامله باندې د پوهېدو لپاره د قران لاندې ايت مطالعه کړئ:



يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا كُونُوا أَنْصَارَ اللَّهِ كَمَا قَالَ عِيسَى ابْنُ مَرْيَمَ لِلْحَوَارِيِّينَ مَنْ أَنْصَارِي إِلَى اللَّهِ قَالَ الْحَوَارِيُّونَ نَحْنُ أَنْصَارُ اللَّهِ فَآمَنَتْ طَائِفَةٌ مِنْ بَنِي إِسْرَائِيلَ وَكَفَرَتْ طَائِفَةٌ فَأَيَّدْنَا الَّذِينَ آمَنُوا عَلَى عَدُوِّهِمْ فَأَصْبَحُوا ظَاهِرِينَ (الصف۱۴)

**"ای مومنانو،تاسې مرسته کونکي د الله جوړ شئ لکه څنګه چې وويل عيسی ځوی د مريمې حواريونو ته څوک دي مرسته کوونکي زما په لاره د الله کې، نو وويل حواريونو چې مونږ يو مرسته کوونکي د الله نو ايمان راوړو څه ډلې له بنې اسرائيلو نه، او انکاري شوه پرې بله ډله نو قوت مو ورکړ هغو ته چې ايمان يې راوړی و پر دښمنانو د دوی باندې پس وګرځيدل دوی غالبان."**

پورته ذکر شوي آيت کې د الله نصرت کولو يا د الله

انصار ګرځېدو څخه مراد څه دي. د دې نه مراد د خدای تعالی په دعوتي پلان کې خپل ځان په قول او عمل سره شریکول. حجت قایمول او خدایي کار خپل کار ګڼل او ورته خواري کول دي. مفسر ابن کثیر د دې آیت په تشریح کې لیکلي دي چې: أی من معینی فی الدعوة الی الله عزوجل؟ قال الحواریون (وهم أتباع عیسئ علیه السلام): نَحْنُ أَنْصَارُكَ عَلَى مَا أُرْسِلْتَ بِهِ ومُوَازروك عَلَى ذَلِكَ؛ وَلِهَذَا بَعَثَهُمْ دُعَاةً إِلَى النَّاسِ فِي بِلَادِ الشَّامِ فِي الْإِسْرَائِيلِيِّينَ وَالْيُونَانِيِّينَ. وَهَكَذَا كَانَ رَسُولُ اللَّهِ صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ يَقُولُ فِي أَيَّامِ الْحَجِّ: "مَنْ رَجُلٌ يُؤْوِينِي حَتَّى أُبَلِّغَ رِسَالَةَ رَبِّي، فَإِنَّ قُرَيْشًا قَدْ مَنَعُونِي أَنْ أُبَلِّغَ رِسَالَةَ رَبِّي." (تفسیر ابن کثیر، جلد ۴، صفحه۳۶۲)

یعنې څوک دي چې د خدای په لور د رابللو په کار کې



زما مرسته کوونکي شي. حوريينو وویل او له دوی څخه مراد د عیسی(ع) پیروان دي. مونږ یو د الله مرسته کونکي، مونږ یو ستا مرسته کونکي په هغه کار کې چې ته ورته رالېږل شوی یې اوپه دې کار کې مونږ ستا ملګرتیا کوونکي یو ځکه حضرت مسیح (ع) د دغو خلکو په طرف د داعي په حیث ولیږل شو د شام ښارونو ته د اسرائیلو او یونانیانو په طرف، همدارنګه رسول الله (ص) به د حج په ورځو کې خلکو ته ورتله او ورته به یې ویل چې په تاسو کې څوک دي چې زما مرسته وکړي تر دې پورې چې زه د الله (ج) پیغام خلکو ته ورسوم ځکه چې قریش د دې مخه نیسي چې زه د خپل رب پیغام خلکو ته ورسوم. رسول الله(ص) بې له شکه د ټولې دنیا لپاره د خدای پیغمبر دی، خو هغوی د یوې لنډې مودې

لپاره دنیا کې وو، او له هغې وروسته وفات شو. اوس پوښتنه دا ده چې رسول اللهﷺ د وفات څخه وروسته دغه مسؤولیت د چا په غاړه دی. ځواب دا دی چې د دې کار مسؤلیت د هغه د امت په غاړه دی. هغه د خپل ژوند په دوران کې په مستقیمه توګه دغه مسؤلیت پر ځای کړ. له هغه وروسته به دغه مسؤلیت د هغه امت په غیر مستقیمه توګه پر ځای کوي. اوس نو د امت مهم مسؤلیت دا دی چې دوی نسل تر نسله او په هره زمانه کې د دین دغه پیغام خلکو ته ورسوي، کوم دین چې پیغمبر[ص] د خدای له لوري راوړی دی او کوم به چې تر قیامته په همدې حال خوندي وي.

د دې معاملې نوره تشریح د یوه حدیث څخه کیږي کوم چې یو مشهور سیرت لیکونکي محمد بن اسحاق



(مړینه ۷۶۸ء) نقل کړی دی. په دې حدیث کې رسول الله ﷺ د حضرت عیسی[ع] د دعوتي میسیون په هکله هم فرمایلي دي او خپله د خپل ځان په هکله یې هم. د دی حدیث ترجمه دا ده:

"رسول الله ﷺ د حدیبیې صلح (۶۲۳ء) کولو څخه وروسته یوه ورځ د خپلو اصحابو مخې ته راغی. هغه وفرمایل چې ای خلکو! الله تعالی زه ټولې دنیا لپاره د رحمت په حیث رالیږلی یم. بیا تاسو په دې معامله کې ما سره اختلاف مه کوئ څنګه چې عیسی[ع] سره حواریونو کړی و. د هغه اصحابو وویل چې ای د خدای رسوله حواریونو څه ډول اختلاف کړی و. هغه وفرمایل چې مسیح [ع] خپل حواریین هغه کار په لور را وبلل کوم لور ته چې ما تاسو رابللي یاست. نو مسیح[ع] چې چا نه نزدې ځای ته د تللو غوښتنه

وکړه، هغوی ومنله او چا نه یې چې لرې ځای ته د تللو غوښتنه وکړه، هغوی ناخوښي وښوده او پر هغوی دغه کار دروند شو. له دې وروسته عیسٰی(ع). الله پاک ته د دې خبرې شکایت وکړ نو کوم خلک **چې د ژبې د نه زده کړې د توپیر له کبله تللو ته تیار نه و، هغوی د هغه قوم په ژبه خبرې پیل کړې کوم لور ته چې عیسی(ع) هغوی لیږدول. له دې وروسته** رسول الله ﷺ خپل اصحاب مختلفو سردارانو او حاکمانو ته د دعوت لپاره ولیږل.

" ابن اسحاق وایي کله چې رسول الله ﷺ د خپلو اصحابو مخې ته راغی او د دغه دعوتي کار په لور یې هغوی متوجه کړل نو هغوی ته یې وویل چې الله زه د ټول عالم لپاره رحمت رالیږلی یم. نو تاسې زما لخوا دغه مسؤولیت پر ځای کړئ. الله دې پر تاسو رحم



وکړي".(سیرت ابن هشام، جلد۴ صفحه/مخ ۲۷۸)

د ځمکې پر سر او له اسمانه لاندې د یوه انسان لپاره د دې نه لوی کوم ویاړ نشته چې هغه د خدای په کار کې بوخت وي. او ګویا کوم چې د الله ﷻ استازیتوب دی. دا بې له شکه یوه داسې رتبه ده چې ترې لویه بله کومه رتبه شونې نه ده.

خدای پاک بشپړ قدرت لرونکی دی. هغه د هر معلوم او نامعلوم کار تر سره کولو پوره قدرت لري. هغه که وغواړي د خپل پیغام د رسولو لپاره به تیږې ګویا کړي، هغه به د ونې هرې پاڼې ته ژبه ورکړي چې د خدای د پیغام اعلان پرې وکړي، خو دا د الله(ج) طریقه نه ده. الله پاک دا غواړي چې د انسانانو په منځ کې د هغه د پیغام رسونه انسان پخپله و کړي، د دې لپاره چې التباس او ابهام پرده باقي پاتې شي، د

دې لپاره چې د امتحان مصلحت زيانمن نه شي.

دعوت چې په قران کې ورته انذار او تبشير ويل شوى دى، په مستقيمه توګه د خداى کار دى. دا ځکه چې تر څو حجت په خداى پاتې نشي او انسانانو ته ورسول شي. خو د امتحان د مصلحت تقاضا ده چې دا کار په کوم معجزانه اسلوب کې تر سره نه شي، بلکې په انسانانو کې يې يو انسان وکړي. همدغه وجه ده چې دغه خدايي کار د انسانانو په ذريعه پاى ته رسول کيږي.

دې حالت د انسان لپاره د يو عظيم عمل دروازه خلاصه کړې ده. کوم خلک چې د دعوت خدايي عمل لپاره را پورته شي دوى سره د دنيا په ژوند کې ځانګړې مرسته کيږي او په آخرت کې به دوى د ځانګړو ډاليو څخه برخمن شي.



يو بنده چې کله لمونځ کوي نو هغه فکر کوي چې هغه د خداى مخې ته د خپلې عاجزۍ اقرار کوي، د دې په مقابل کې کله چې هغه د دعوت الى الله کار کوي نو احساس يې دا وي چې هغه خپله د خداى[ج] يو کار کوي. يو انسان لپاره بې له شکه د دې نه زياته بله خوندوره تجربه نشته چې هغه دا محسوس کړي چې زه د خپل رب په کار کې بوخت يم، زه د خپل رب يو پلان سرته رسوم. ( دعوت حق، له: مولانا وحيدالدين خان، صفحه ۵-۱۴)

**الرساله آن لاین**

تاسو په www.alirsala.org وېبسایټ کې الرساله میاشتنۍ (اردو) نوې او زړې لیکنې او د مولانا وحیدالدین خان صاحب کتابونه آن لاین لوستلی او وړیا ډاونلوډ / ښکته کولی شئ.

## (د اُمت مسؤولیت)

د قرآن پاک په شپږم سورت کې الله تعالی فرمایلي دي.

تاسو پوښتنه وکړئ چې تر ټولو لوی شاهد څوک دی. ووایه الله، هغه زمونږ او ستاسو په منځ کې شاهد دی، او ماته وحې کړای شوې ده **د قرآن لپاره د دې** چې وویروم تاسې په دې سره او هغه چاته چې ورسیږي ایا بې له شکه تاسې شاهدي ورکوئ چې الله



سره نور خدایان شته؟ ووایه چې زه شاهدي نه ورکوم. ووایه چې بېشکه همدغه الله یوازېنی معبود دی او زه بیزاره یم له هغو شیانو څخه چې تاسې یې هغه سره شریکوئ، رسول الله ﷺ د ټولې دنیا لپاره د نذیر(ویروونکي) په حیث لیږدول شوی دی. (الفرقان:۱) دا چې رسول الله یوازې ۶۳ کاله ژوند وکړ او بیا وفات شو او دا چې رسول الله نور په دې دنیا کې نشته، پوښتنه پیدا کیږي چې اوس به راتلونکو نسلونو ته دغه پیغام څنګه رسیږي. د دې ځواب په یاد شوي ایت کې ورکړل شوی دی.

په دې آیت کې د پیغمبر په ژبه دا ویل شوي دي چې: "پر ما باندې قرآن نازل شوی دی تر څو تاسو او هغه څوک چې پیغام ورته رسیږي خبردار کړم". (لِأُنذِرَكُم بِهِ وَمَن بَلَغَ) رسول الله د خپلې زمانې خلکو

ته په مستقیمه توګه د خپل کوښښ سره د قرآن پیغام ورساوه. اوس پوښتنه دا ده چې د قرآن دا پیغام به راتلونکو نسلونو ته په کومې ذریعې سره رسیږي. دا ذریعه د هغه امت دی. له هغه وروسته د هغه امت د هغه په استازیتوب د پیغام رسونې دغه کار تر سره کوي. د امت خلک به په هر دور کې د خپلې زمانې انساني نسلونو ته د قرآن د تبلیغ دغه کار کوي تردې چې قیامت راشي.

قرآن یو خدایي اخطار دی قرآن د دې لپاره نازل شوی نه دی چې هغه د عامو کتابونو غوندې په الماری کې کیښودل شي، بلکې د دې اړینه غوښتنه ده چې هغه د هرې زمانې وګړو ته پر له پسې ورسول شي. پیغمبر که چېرې د خپلې زمانې خلکو ته د پیغام رسونې دغه کار نه وای کړی نو د خدای په



نظر کې د هغه پیغمبر کېدلو کې شک پیدا کېده (المائده:٦٧). له همدې کبله پیغمبر ﷺ تر اخري حد پورې د دې حریص و چې خلکو ته د خدای پیغام ورسوي. تر دې چې خپله الله پاک دا وفرمایل چې کېدای شي چې تاسو خپله ځان هلاک کړئ په دې غم کې چې خلک ایمان ولې نه راوړي (الکهف:٦).

په دې لړۍ کې کوم مسؤولیت چې د پیغمبر و، د پیغمبر نه وروسته بلکل هماغه مسؤولیت د هغه د امت په غاړه شوی دی. امت ته هغه ذریعه ګرځېدل پکار دي چې پرې د قرآن پیغام ټولو انسانانو ته ورسول شي. په دې معامله کې امت او په خاصه توګه عالمانو ته تر هغه اخري حد پورې تلل دي او دا ثبوت ورکول دي چې هغوی د عامو انسانانو د هدایت حریص ګرځېدلي دي. هغوی ته په دې کار

کې خپل ځانونه دومره شاملول دي چې په ظاهره محسوس کېدل پیل شي چې شاید هغوی په دې کوښښ کې خپل ځانونه هلاک کړي.

په حدیث کی راغلي دي چې رسول الله ﷺ وفرمایل چې دې امت ته په نورو ټولو امتونو فضیلت او غوره والی ورکړل شوی دی (فضیلة هذه الامة على سائر الامم، مسند أحمد، ٣٨٣\٥). د محمدي امت دغه فضیلت د کوم پټ سبب له کبله نه دی او نه یې څه میراثي حق دی. د دې سبب یوازې دا دی چې د نبوت د ختمېدو نه وروسته دې امت ته هغه دروند مسؤولیت په غاړه اخیستل او پر ځای کول دي چې لدې وړاندې پیغمبر پخپله پر ځای کړی و. پیغمبر د دې مسؤولیت احساس بوډا کړی وو (شیبتنی هود واخواتها) دا دروند مسؤولیت چونکه



په خصوصي توګه خاتم النبیین امت ته سپارل شوی دی ځکه یې درجه هم اوچته کړای شوې ده. څنګه چې دا اصول دی چې هر څومره لوی مسؤولیت وي هغومره یې جایزه او انعام هم لوی وي.

د مسلمان امت مسؤولیت چې عام تبلیغ دی د اختیاري عمل غوندې نه دی چې که څوک غواړي نو تر سره یې کړي که نه یې غواړي نو پرېږدي یې. دا یو داسې مسؤولیت دی چې په هر حال کې یې تر سره کول دي. څنګه چې پیغمبر لپاره په دې معامله کې عذر د منلو وړ نه و. همدارنګه د هغه د امت لپاره به هم په دې معامله کې څه عذر د منلو وړ نه وي. تر دې چې په ظاهره نور دیني عملونه هم د امت د ژغورنې او خلاصي لپاره بس کېدای نشي. که چېرې

هغوی د عام دعوت دا فريضه پرېښودلې وي.
هره ورځ په زرګونو انسانان مړه کېږي. په دې توګه هغوی د دې فرصت نه بې برخې کېږي چې هغوی ته د خدای خبره ور ورسول شي او هغوی يې په قبولو سره خپل اخري انجام ښايسته کړای شي. په داسې حالت کې د مسلمان امت مهمه فريضه ده چې هغوی هر عذر پرېږدي او د دعوت الی الله دې لړۍ لپاره را پورته شي.

## مهمه فريضه

د قرآن د انعام په سورة کې فرمايل شوي دي.
ای پيغمبره ورسوه هغه څه چې پر تا نازل کړای شوي دي ستا د رب لخوا په تا باندې **او که دې ونه رساوه نو نه دی رسولی تا هيڅ پيغام د ده او الله**



**ساتي تا له خلكو** او بې له شکه الله کافر قوم ته هدايت نه کوي (المايده : ۶۷).
الله پيغمبر د دې ځانګړي هدف لپاره رالېږلی دی چې د الله هدايت خكو ته ورسوي. همدغه د پيغمبر اصلي ميسيون و. پيغمبر که چېرې دغه کار نه وی کړی يعنې د الله پيغام يې خلکو ته نه وی رسولی نو دا داسې ده لکه چې هغه خپله دنده ترسره نه کړه او ميسيون به يې نابشپړ پاتې شوی وای. او کله چې پيغمبر د خپل ميسيون په پوره کولو کې نا کام شي نو د هغه اصل حيثيت د خدای په نظر کې شکمن کېږي. په نورو ټکو کې دا چې د پيغمبر پيغبري د خدای په نظر کی هغه وخت پوره کېږي کله چې هغه د خدای ورکړي دعوتي ميسيون پوره کړای شي، په بل صورت به هغه يو داسې انسان وګرځي چې د

خپل واقعي حیثیت په اثباتولو کې ناکامه شوی وي.
د نبوت له ختمېدا وروسته محمدي امت د نبوت پر ځای باندې دی یعنې هغه ته هماغه کار سر ته رسول دي کوم چې پیغمبر خپلې زمانې کې سر ته رسولی و. د دې نه معلومه شوه چې خپله پیغمبر غوندې، د محمدي اُمت امتیت ټول ټال په دې باندې منحصر دی چې هغه د پیغمبر په نماینده ګئ د خدای د پیغام د تبلیغ کار وکړي. هغه د هرې زمانې انسانانو ته د خدای دین په سوچه او ربښتني صورت کې ورسوي، که چېرې هغوی داسې ونه کړي نو پر هغوی به هم د یاد شوي آیت الفاظ همدا ډول ربښتیا کیږي څنګه چې پر پیغمبر باندې ربښتیا کیږي. یعنې هغوی به د خدای په نظر کی د محمد(ص) د امتي کېدو حیثیت د لاسه ورکړي.



په دې معامله کې د امت لپاره د دعوتي عمل درې درجې دي. د امت هر وګړي ته د خپل صلاحیت په اعتبار سره له دغو څخه یوې درجې کې د خپل داعي کېدو حیثیت ثابتول دي. کوم خلک چې په دغه عمل کې شرکت ونه کړي د هغوی نور عملونه به د خدای په نظر کې بی قیمته وګرځي. په دې معامله کې د پیغمبر او د پیغمبر د اُمت لپاره د خدای یو ډول معیار دی.
د دې معاملې لومړۍ درجه هغه ده کوم ته چې په شریعت کې نیت ویل کیږي یعنې د نیت په اعتبار سره د دعوت په عمل کې شریکېدل خو دا نیت د کوم لفظي تکرار نوم نه دی، دا د زړه له کومې نه د نارامه کېدو نوم دی. هر مومن لپاره ضروري ده چې هغه د نورو قومونو د هدایت حریص وي. هغه د

هغوی بې لارېتوب ته کتلو سره نا ارامه شي. هغه په يوازې والي کې د هغوی د هدايت لپاره دعا وکړي او دغه جذبه دومره شديده وي چې پرې سوچ کولو سره د هغوی د سترګو څخه اوښکې روانې شي.

دويمه درجه دا ده چې مؤمنان په شدت سره دې ته پام وکړي چې د هغوی ذات په يوه اعتبار سره هم د دعوت په لاره کې خنډ ونه ګرځي. يو عمل هم داسې ونه کړي چې د خلکو په زړه کې د اسلام پر ضد نفرت او بيزاري پيدا شي، د هر داسې عمل څخه ډډه وکړي چې د داعي او مدعو تر منځ د تاوتريخوالي سبب ګرځي. او په هر حال کې بايد دغه کارونه په پام کې ونيول شي اګر که دې لپاره هغوی ته قومي يا اقتصادي يا سياسي نقصان پورته کول هم وي.

درېيم شی په مستقيمه توګه دعوت دی. يعنې کومو



خلکو کې چې صلاحيت وي هغوی دې د خبرو او ليکنو په ذريعه د خدای بنده ګان د حق دين په لور را وبلي. هغه دې خپل تاثير نه ډک کلام په ذريعه د هغوی زړونه او دماغ تر دې حده پورې بدلولو هڅه وکړي چې هغوی بې لارېتوب پرېږدي او د هدايت لاره خپله کړي.

(او الله به تا له خلکو ژغوري) د دې مطلب په نورو الفاظو کې دا دی چې په دې موضوع کې يو عذر هم عذر مه ګرځوه او ستا هيڅ کوم عذر د الله پر وړاندې نه منل کېږي. تا ته يوازې دا کول دي چې هر د منلو او نه منلو وړ عذر د خدای په خانه کې واچوه او خپل ځان د دعوت په کار کې بوخت کړه لدې پرته بله هره لاره د مومنانو لپاره جايز نه ده.

د الهي شريعت دا اصول دی چې د انسان نه

هماغومره پوښتنه کیږي څومره یې چې وس وي. دعوت هم دغه مثال لري. د کوم سړي سره چې څومره امکانات وي په هغه اندازه یې مسؤولیت دی. تردې چې څوک هیڅ امکانات ونه لري نو هغه دې د په اخلاص سره دعا وکړي.

## یو پیغام د میسیون د ملګرو په نوم

زه دا وخت تاسو سره څو اړینې خبرې کول غواړم. دا خبرې زما په اوږدو تجربو باندې ولاړې دي. له مطالعې، `تجربې او دعا وروسته ویلی شم چې دا خبرې خورا مهمې دي. کومه ښځه او سړی چې دعوتي میسیون سره یو ځای شي او د دعوت کار کول غواړي نو لاندې ټکي دې پام کې ونیسي.



## نتیجه ورکوونکې هڅه

## (Result- oriented Effort)

زما د تجربې مطابق یوازې هغه کوښښ صحیح دی چې نتیجه ورکونکی وي. بایبل کې ویل شوي دي.

تا ډېر زیات وکرل او لږ دې ورېبل:

You have sown much, and bring in little (haggai ١:٦)

لدې څخه دا حقیقت معلومیږي چې خلک په عامه توګه ډېر زیات کار کوي خو یوازې د هغې لږه نتیجه ترلاسه کوي. داسې ځکه کیږي چې خلک په عمومي توګه د خپل عمل نتیجه مخې ته نه ږدي. زه تاسو ټولو ته وایم چې تل د خپل عمل نتیجه مخې ته په ایښودو سره کار وکړئ او یوازې هغه کار وکړئ چې د نتیجې په هکله یې تا ته معلومات وي چې نتیجه ورکونکی دی.

## له وينا سره د عمل اهميت

په دنيا کې اکثره خلک په ښکلو الفاظو کې خبرې کوي. زما له تجربې مطابق د عمل نه پرته ښايسته الفاظ کوم حقيقت نه لري. زه په پوره يقين سره ويلی شم چې د ښه عمل نه پرته ښه الفاظ د اجر وړ شی نه دی بلکې گناه ده.

ځکه نو تاسو بايد په دې اړه ډېر محتاط ووسئ. تاسو صرف هغه خبره کوئ چې عمل پرې کولی شئ. تاسو بايد په دې اړه ډېر هوښيار ووسئ چې د خلکو په ښايسته خبرو باندې تاسو يقين وکړئ. تاسې د چا په ښايسته خبرو صرف هغه وخت باور وکړئ چې عمل هم ورسره وي. د عمل نه پرته د ښايسته الفاظو هيڅ اهميت نشته.



## په نړيواله کچه د ادب خپرونه

زما د علم مطابق زما اردو کتابونه د اسلام د صحيح تعبير معلومولو يوازينۍ ذريعه ده. د دې مقصد لپاره بل کوم ادب گټور نه دی. اړينه ده چې تاسې بايد زما ټول چاپ او ناچاپ کتابونه، چې په اردو يا نورو ژبو کې ليکل شوي دي، د انگليسي په گډون نورو نړيوالو ژبو ته وژباړئ او په نړيواله کچه يې خپاره او چاپ کړئ.

تاسو بايد ټولو انسانانو ته د اسلام پيغام رسولو لپاره د چاپ او برېښنايي رسنۍ په منظمه توکه وکاروئ. زما له کتابونو پرته زما د سلگونو تقريرونو غږيز او ليديز سبتونه شوي دي. تاسو د تلويزيون، راډيو، سي ډي، وي سي ډي، ډي وي ډي، مطبوعاتو او د هرو شونو

لارو نه په ګټه اخیستلو سره د نړۍ هر انسان ته د الله پیغام ورسوئ.

## پروګرام جوړونکي وګړي

له ما څخه ډېر ځلې دا پوښتنه شوې ده چې ستا د میسیون کړنلاره څه ده. زما د تجربې سره سم یو داعي د خپل دعوتي مسؤولیتونو د پوره کولو لپاره له مختلفو حالاتو څخه تېریږي چې د دې لپاره یو پروګرام بس نه وي نو ځکه زه د دا ډول پوښتنې ځواب تل همدا ورکوم چې ـ زمونږ کار پروګرام جوړونکي وګړي تیارول دي.

د دې مطلب دا دی چې تاسو داسې انسانان جوړشئ چې د دعوتي روحې نه په پوره توګه ډک شوي یاست. ددې دعوتي روحې (spirit) شتون به د دې لپاره بس شي چې



تاسو مختلفو حالاتو کې خپله خپل دعوتي پروګرام جوړ کړای شئ.

## د اخوانِ رسول کردار

د رسول اللهﷺ یو حدیث دی چې د خپلو "اخوان" یادونه یې پکې کړې ده. هغه فرمائیلی: وَدِدْتُ أَنَّا قَدْ رَأَيْنَا إِخْوَانَنَا. قَالُوا: أَوَلَسْنَا إِخْوَانَكَ؟ يَا رَسُولَ اللهِ قَالَ: أَنْتُمْ أَصْحَابِي وَإِخْوَانُنَا الَّذِينَ لَمْ يَأْتُوا بَعْدُ. (صحح مسلم، نمبر الحدیث:۳۶۷) یعنې زه غواړم چې مونږ خپل ورونه وګورو. اصحابانو وویل چې ای د خدای رسوله ایا مونږ ستا ورونه نه یو هغه وفرمایل چې تاسو زما ملګري یاست او زمونږ اخوان( ورونه) هغه دي چې لا نه دي راغلي.

پورته ذکر شوي حدیث کې رسول الله چې د خپلو

کومو "ورونو" په هکله ویلي دي مراد ترې هغه مؤمنان دي کوم به چې د معرفت په کچه رسول پیژني او په وروسته زمانه کې دعوتي مقصد لپاره را پورته کیږي ترڅو چې ټولو انسانانو ته د خدای تل پاتې پیغام ورسوي. د پیغمبر ورونه (اخوان رسول) په معروفه معنا کوم لقب نه دی بلکې یو مسؤولیت دی.

د اخوان رسول ټکی له زرو کلونو راهسې مرموزه ګرځېدلی دی. د تاریخ په یوه دور کې هم دا نه ده واضح شوې چې دا به کوم خلک وي او په راتلونکي کې به د دوی څه ونډه وي. له دې حدیث څخه په واضحه توګه معلومیږي چې له ساینسي دور وروسته (post scientific era) د دعوت الی الله پیغمبرانه رول تر سره کول لا تراوسه باقي دي. یعنې د نن په



اصطلاح کې د خدای حق پیغام په خپل خالص او نا مخلوط صورت کې د انسانانو مخې ته وړاندې کول.

له ساینسی دور وروسته را پورته کیدونکې دعوتې ډله د "اخوان رسول" دې لقب لپاره په یقینی توګه د یوې کاندیدي ډلې حیثیت لري. په تاسو کې هر سړي او ښځې لپاره اړینه ده چې دغه امکان په واقعیت بدل کړئ.

دغه امکان په واقعت بدلول په دې ډول شوني کیدای شي چې تر ټولو وړاندی تاسې په خپله د اسلام معرفت حاصل کړئ، لدې وروسته د قرآن سمه انګلیسي ژباړه او د الرساله چاپ شوي کتابونه نورو انسانانو ته د روسولو کار وکړئ او په دې توګه په ریښتینې معنا کې د دعوت الی الله فریضه تر سره کړئ.

د دې لپاره اړینه ده چې ستاسو په زړونو کې د ټولو انسانانو لپاره د خیرخواهۍ روحیه موجوده وي، د رښتیني خیرخواه په حیث راپورته شئ او په زړونو کې مو د هر چا لپاره مینه او زړه خوږی وي. ستاسو هدف باید څه وي، په یوه حدیث کې په دغو الفاظو کې بیان شوي دي: لا یبقی علی وجه الارض بیت مدر ولا وبر الا ادخله الله کلمة الاسلام (مسند احمد مشکاة المصابیح،رقم الحدیث:۴۲) یعنې د ځمکې پر سر به داسې کوم کور او خیمه پاتې نشي چې د الله تعالی د اسلام کلمه په کې نه وي داخله شوې.

دا کومه پټه خبره نه ده. دا د حدیث په ژبه د دعوت د امکاناتو اظهار دی. دا د هغه دور وړاندوینه ده کله چې د رسنیو پېښه مخې ته راشي او د هغه په استعمالولو سره هر انسان ته د اسلام کلمه رسول



شونې وګرځي. دغه کار یوازې دا ډول شونی دی چې مونږ دعوتي مقصد سره د ژوند او مرګ عزم وکړو او دا کار د خپل لومړنی علاقمندۍ (Primary concern) کار ګرځولو سره باقي نورو ټولو شیانو ته په خپل ژوند کې وروستی (Secondary) حیثیت ورکړو.

## د رایې قرباني

عمرة الحدیبیه (۶۲۳) د ترسره کولو وروسته رسول الله د خپلو اصحابو یوې ټاکلې ډلې ته وینا وکړه. هغه (ص) وفرمایل چې: ای خلکو الله تعالی زه ټول عالم لپاره رحمت رالېږلی یم، بیا تاسو زما په هکله اختلاف مه کوئ څنګه چې حواریونو عیسی ځوی د مریم سره اختلاف کړی و. د هغه (ص)

اصحابو پوښتنه وکړه چه ای د خدای رسوله حواريیونو څه ډول اختلاف کړی و، پیغمبر (ص) وفرمایل: چې عیسی ځوی د مریم هغوی د هغه شي په لور راوبلل چې ما پرې تاسو رابللي یاست. نو کوم خلک یې چې (دعوتی مقصد لپاره) نږدې ځایونو ته ولیږل، هغوي راضي شول او هغه یې ومانه او څوک چې یې د لرې ځای ته ولیږل نو دغه کار ورته ناخوښی او دروند ښکاره شو. عیسی ځوی د مریم د الله تعالی نه په دې هکله شکایت وکړ. نو چا ته چې دغه کار ناخوښی ښکاره شوی و، د هغه قومونو په ژبه یې خبرې پیل کړې چې هلته د ورتګ غوښتنه ترې شوې وه. ځکه نو باید تاسو ته ووایم چې د دعوتي میسیون لپاره اتحاد او یووالی ډیر ضروري دی. د اتحاد مطلب دی سره له اختلافاتو یوځای او متحد



اوسېدل. تل یاد ستاسئ چې اتحاد زمونږ قوت دی او اختلاف زمونږ کمزوري : United we stand, divided we fall.

تاسو د رسول الله صلی الله علیه و سلم دا حدیث تل په خپل ذهن کې تازه ساتئ: مَن شذّ شُذَّ الی النار(الترمذی کتاب الفتن) یعنې کوم کس چې د اجتماعیت څخه جدا شو هغه به اور ته ځی. دا حدیث ډیر مهم دی. په دې حدیث کې له اختلاف څخه مراد د نفسیاتو اختلاف دی، ډله ییز اختلاف نه. یعنې اصله بدي عملاً د یوې ډلې څخه پرېکېدل نه دي، بلکه اختلاف پیدا کولو سره اتحاد ټوټه ټوټه کول دي. ځکه تاسې باید پدې پوه شئ چې تاسې کله هم اختلافات عذر (excuse) ګرځولو سره دعوتي میسیون نه جدا کیږئ، خدای پاک به په دې

صورت کې د ستاسو د يو عذر هم قبول نه کړي.

يو سړی چې کله کومه رايه خپلوي نو هغه فکر کوي چې د ده رايه سمه ده. دا يوازې د هغه د محيط د تربيت له اغيزې (conditioning) کيږي. چا ريښتيا ويلي دي چې د يو سړي لپاره تر ټولو لويه قرباني د خپلې رايې قرباني ده. تاسو به د اتحاد لپاره د خپلې رايې قرباني ورکوئ. دا بې له شکه تر ټولو لويه قرباني ده. همدغه قرباني ده چې په قيمت باندې يو موټی کېدو سره تاسې خپله دعوتي فريضه سرته رسولی شئ.

زه دعا کوم چې الله دې ستاسې مرسته وکړي چې خپل دعوتي مسؤوليتونه په ښه توګه سرته ورسوئ او د "اخوان رسول" کردار ادا کړای شئ او د اسلام کلمه د ځمکی پر سر هر کور ته ورسولی شئ.



## د کولو کار

تاسو ته چې په امن سره کوم دعوتي کار کول دي، هغه په بنسټيزه توګه د قرآن سمه انګليسي ژباړه، د قرآن خپرونه او د تقريرونو غږيز او ليديز/وډيويي سي ډي او زما د نورو کتابونو خپرول عامول دي.

رسول اللهﷺ يو ځل خپلو اصحابو ته په وينا کولو کې فرمايلي و: الا هل بلغت. يعنې ايا ما د خدای(ج) پيغام تاسې ته را ورساوه. اصحابو د دې په ځواب کې وويل "نشهد انک قد بلّغت و أدّيتَ ونصحت" يعنې مونږ شاهدي ورکوو چې تاسو د خدای پيغام په پوره خيرخواهۍ او امانت سره مونږ ته ورساوه، موږ هم بايد د دغه مسؤوليت احساس ولرو چې موږ د خدای پيغام هر انسان ته ورسوو او کوم

کوچنی یا لوی کور د اسلام د کلمې د داخلېدو پرته همداسې پاتې نه شي.

تر کوم ځایه چې زما د کتابونو تعلق دی نو د ټولو نه لومړی کار به د دې کتابونو د انګلیسي ژباړې د خپروني څخه وي. ځکه چې نن د نړۍ ټول نفوس کې شپېته سلنه په انګلیسي خبرې کوي او پرې پوهېږي او وروسته به د حالاتو سره سم دا کار نورو ژبو ته پراخېږي. د دې خپرنيز کار په بنسټيزه توګه څو برخې دي.

۱. د قرآن سمه انګلیسي ژباړه په لږ قیمت ټوله نړۍ کې خپرول (د قرآن دغه انګلیسي ژباړه به د خدای په فضل ډېر ژر خپاره شي)

۲. د تذکیرالقرآن هندي ژباړه تیاره او چاپ شوې ده. تاسو هر یو باید دغه زیات نه زیاتو انسانانو ته په



محنت کولو سره ورسوئ.

۳. د الرساله میسیون کتابونه زیات نه زیات خپرول د مثال په توګه تذکیرالقرآن، مطالعه سیرت، مطالعه حدیث مذهب او ننۍ ننګوونې، ( god arises)، د خدای په لټوه کې ( in search of god)، د امن مفکوره (Idealogy of peace)، د خدای د تخلیق پلان (creation plan of god) او داسې نور.له دې سره سره په خپلو سیمو کې کتابتونونه او د مطالعې ځایونه جوړ کړئ ترڅو ډېرو خلکو ته د دغو کتابونو رسیدل شوني شي.

۴. وړې وړې دعوتي کتابچې (Dawah booklets) کابو دېرشو په شمېر کې چاپ شوي دي، هغه زیات نه زیات خپرول تر دې چې هغه ټولو باسواده انسانانو ته ورسېږي.

۵. د خدايي رڼا لړۍ رسالې (Pamphlet) هم چاپ شوي دي. دا رسالې امن او روحانيت او د اسلام حقيقي انځور وړاندې کوي. سړی دغه چاپ شوې کتابچې په يوه ناسته کې لوستلی شي. دا رسالې د مدعو سره د عوتي کار کولو لپاره اعلی رسالي دي. د دې په ذريعه تاسو اسلامې ښوونې او مفکورې (concepts) ډېر په اسانۍ سره خپل مدعو ته رسولی شئ. تاسو بايد د دغو دعوتي رسالو په واسطه د خپل چاپېريال ټولو خلکو ته د خدای (ج) پيغام ورسوئ.

۶. د برېښنايي رسنيو اهميت وپېژنئ او د دعوتي مقصد لپاره يي زيات نه زيات وکاروئ. زما دعوتي درسونه په مختلفو شبکو (channels) پر تلويزونونو خپريږي د مثال په توګه د ښه ژوند



لړۍ (good life series) په زی جاګرن باندی، د ژوند راز لړۍ په ـ ای.آر.وای او په داسې نورو. د خدای په فضل سره مونږ د قرآن او د رسول الله ﷺ حديثونو لړۍ هم ثبتوو، په همدې توګه د اصحابانو د ژوند لړۍ او د رباني حکمت لړۍ هم تياروو.

اوس نو تاسو بايد دغه مواد زيات نه زيات خلکو ته ورسوئ. تاسو په خپلو سيمو کې له خپله اړخه هم دغه پروګرامونه د کوم تلويزوني شبکې يا راډيو په ذريعه نشر کولی شئ.

د خدای تل پاتې پيغام ټولو انسانانو ته رسولو لپاره مونږ خپل ويب سائټ ځايونه هم په لاندينو نومونو سره جوړ کړي.

www.alrisala.org
www.cps.org.in
www.wkhan.net

www.goodwordbook.com
تاسو زيات نه زيات خلکو ته د دغو بريښنايي پاڼو په هکله خبر ورکړئ. د ياد شوو رسنيو وسايل استعمالولو سره تاسو په ګډه د خدای(ج) پيغام د هند او بيا د ټولې نړۍ انسانانو ته ورسوئ. د الرساله په بريښنايي پاڼه کې غږيز او ليديز/وډيويي درسونه وړيا پرانيستلی شئ.

## په هند کی دعوت الی الله

د رسول الله ﷺ په حديثو کې وړاندوينه موندل کيږي چې په وروسته زمانه کې به د دعوت الی الله د کار لپاره هند کې يوه ځانګړې ډله (عصابة) راپورته کيږي ـ عصابة تغزو الهند (نسائی، کتاب الجهاد، باب غزوة الهند) يعنې يوه ډله ده چې هند کې به غزوه



کوي. دلته د "غزوه" څخه مراد دعوتي هلې ځلې دي. دغه ځانګړې دعوتي ډله به هند کې په داسې ډول د دعوت الی الله کار تر سره کوي څنګه چې به يې په نړيواله سطح د دعوت الی الله کار تر سره کوي او خلکو ته به د جنت لاره ورښايي. زه په پوره يقين او باور سره ويلی شم چې حديث کې د کومې دعوتي ډلې وړاندوينه شوې ده، هغه په امکاني توګه هغه خلک دي کوم چې په دې دور کې د دعوت الی الله کار وکړي.

د خدای له لورې د دې خبرې پريکړه شوې ده چې په هند کې د دعوت الی الله کار به داسې منظم وي چې په ذريعه به يې خلک د خدای د تل پاتې رحمت تر سيورې لاندې راشي. ذکر شوي حديث کې معلوميږي چې هند کې راپورته کيدونکې دغه دعوتی ډله به د جهنم د اور څخه ژغورل شوي وي ( احرزها الله من النار)، د جنت دروازې به د

هغوی لپاره خلاصې کړای شي او دغه خلک به د خدای په تل پاتې جنت کې ځای ومومي.

ځکه نو تاسو باید په دغه دعوتي کار کې په پوره باور او بشپړ ډول ځان شریک کړئ. هر سړی او ښځه دې ځان د دغې دعوتي ډلې نه بېلېدونکې برخه وګرځوي. که چېرې تاسو خپل دعوتي مسؤولیتونه پوره کړل نو خدای(ج) به تاسو خامخا په دې دعوتې ډله کې شامل کړي چې په اړه یې په حدیث کې له وړاندې زیری ورکړل شوی دی.

حقیقت دا دی چې د رسول الله ﷺ یواځینی میسیون توحید و. یعنې خلک د شرک څخه د یو خدای(ج) عبادت ته راوستل. د توحید له هند پرته کابو د نړۍ هرې برخې ته رسیدلی دی. دلته اوس هم شرک په ژوندۍ بڼه شتون لري. ځکه چې دلته د دعوت الی



الله کار د ضرورت په اندازه ونه کړای شو. زما په آند اوس هغه وخت راغلی دی چې هند کې د دعوت الی الله لپاره هغه ډله راپورته شي چې رسول الله وړاندوینه کړې وه. زه یقین لرم چې همدا دعوتي ډله هغه "عصابة" ده چې په هکله یې خدای د بري پرېکړه کړې ده. زما دعا ده چې الله پاک تاسو په هغه ډله کې شامل کړي. (الرساله مئ ٢٠٠٧)

دعوتي مقصد لپاره کتابچې، د قرآن ژباړې، کتابونه، سي ډیانې، ډي وي ډي او داسې نور په کم قیمت باندې تر لاسه کولو لپاره رابطه وکړئ.

Goodwords Books, Pvt. Ltd. First Nizamudding West Market, N. Delhi ١١٠٠١٣, Tel. ٢٤٣٥٦٦٦٦, ٢٤٣٥٥٤٥٤, email: infor@goodworbooks.com

------------------------------------------------

دعوت الى الله

دعوت الى الله يو سوچه اخروي کار دی چې له ټولنيز، اقتصادي او سياسي لانجو سره يې هيڅ اړيکه نشته. دا انسان لره د خدای او آخرت په لور رابللو يو کمپاين دی. په همدې ديني او روحاني اسلوب کې هغه پيل کيږي او په همدې اسلوب کې تر پايه دوام مومي.

دعوت الى الله لپاره اړينه ده چې ستاسو په زړونو کې د ټولو انسانانو لپاره د خواخوږۍ روحيه موجوده وي، تاسو د رښتيني خيرخواه په حيث راپورته شئ چې په زړونو کې مو د هر چا لپاره مينه او همدردي وي.